# سیاست پېژندنه؛ له اسلام سره تلازم او ضرورت يې! (لومړۍ برخه)

نن ټکی اسیا جنوري 18, 2021




حماد افغان شېرزاد

دا چې حکومتونه اوس د سیاست پر لاره ډېره تکيه کوي، هر طرفته د سیاست چرچې دي، نو غربيان کوښښ کوي چې د سیاست او اسلام تر مينځ تفريق او جدوالی راولي او خلکو ته داسې ځرګندوي چې د سياست او اسلام هيڅ تعلق او اړيکه نشته او يا هم لږ تر لږه که د سياست او اسلام اړيکه ومني نو بيا داسې پروپاګند کوي چې د علماء کرامو او ديني طبقې د سياست سره هيڅ کوم ارتباط او اړيکه نشته، حال دا چې د سياست شروع د اسلام مبارک دين کړې، دوی د ځينو بې دينه او علماء سوء د سياست ميدان ته ورګډ کړي چې ټول نظام يې د اروپا او غرب څخه الهام اخلي.

که تاريخ وګورو او ژور نظر پرې واچوو د اسلام د ستر پيغمبر او بيا د هغه ملګرو په څېر سياست او نظام اداره کولو ساری نه ليدل کيږي او نه هم به يې څوک ساری پيدا کړي.

غربيانو د همدې لپاره چې اسلامي سياست بدنام کړي ډېرې کړې يې په همدې ګمارلې چې خلکو ته وښايي چې د اسلام او د علماء کرامو د سياست او نظام چلونې سره هيڅ کوم تعلق او اړيکه نشته.

په همدې اساس ومې غوښتل چې د سياست په موضوع څه وليکم او روښانه کړم چې سياست له موږ څخه ځوک هم زيات نه پيژني او نه هم د تاريخ په اوږدو کې د سياست په ميدان کې د اسلام او مسلمانانو په څېر سابقه ولري.

د سياست لغوي او اصطلاحي تعريف او پيژندنه:
د سياست د لغوي او اصطلاحي معناوو په اړه علماء کرام او د نورو اديانو خلک ډېر غږېدلي او هم يې ليکل پرې کړي خو دلته يې فقط يو لنډه لغوي او اصطلاحي معنا کوم.

سياست د سَاسَ يسُوس مادې څخه مصدر دی په مانا د خلکو د امورو مشري کول، نيکې لارې ته د خلکو راهنمايي کول، د حکومت او نظام چلونې هنر او يا هم رعايت او تدبير ته ويلای شي، ځکه خو "السائس" مدبر، منتظم او سياست پوه انسان ته ويل کيږي.

اصطلاحي تعريف د امام راغب اصفهاني، امام غزالي او امام ابوالحفص عمرالنسفي رحمهم الله درې واړو د تعريف خلاصه داسې ده چې:
سياست د الله تعالی مخلوق اصلاح کول، نېغه لار ورته ښودل، د ځمکې آبادول، الهي احکامو تنفيذ او د رعيت د کارونو ځارنه او اصلاح کول په تدبير سره.

د علامه شمس الحق افغاني تعريف لنډ خو ډېر جامع دی، هغه وايي:
سياست هغه نظام دی چې د الهي احکامو (ټول شريعت) او بشري حقوقو ساتونکې او مدافع وي.

فقهاء کرام بيا اسلامي سياست داسې تعريفوي:
سياست هر هغه فعل او عمل دی چې حاکم يې د اجتماعي مصالحو لپاره ترسره کوي، خلک اصلاح کوي اګر که دا عمل د شريعت او د رسول اللهﷺ طرف نه وضع شوی نه وي.

شرعي سياست کې مهمه دا ده چې د حاکم عمل او اقدام به له شريعت سره په ټکر کې نه وي او ټولو قواعدو او اساسي مباديو به متکي وي او نه به د شريعت د تفصيلي دليل سره متناقض وي.

موږ په اوسني وخت کې د نظام او واحد مرکزيت څخه محروم او بې برخې يو، نو ځکه راباندې جابر، ظالم او د شريعت سره مخالف او له نظره يې لرې حکومتونه مسلط دي، د

اسلام د خپراوي او خصوصا په اوسني وخت کې چې کفر په دنیا غلبه کړې او د حقیقي اسلام نه سکروټه جوړه شوې ساتنې او دفاع لپاره نظام ته ډېره زیاته اړتیا ده، ځکه که نظام ولرو د هر اړخ او حکومت سره خبرې کولای شو، د اسلامي نظام او سلطنت سرحدات ساتلی شو، د خپلو دیني او ملي ارزښتونو دفاع ښه په نره او ډاډه زړه کولای شو او که یو ځوک د اسلام، پیغمبر، قرآن او یا هم نورو شعائرو او ارزښتونو سپکاوی او توهین وکړي نو ښه په زغرده یې ځواب ویلی شو.

تاریخ که پورته کړو او ژوره مطالعه یې وکړو نو زموږ اسلاف د سیاست په میدان او نظام اداره کولو کې ستره سابقه لري، د رسول الله ﷺ او د هغه د ملګرو سیرت ټول سیاست سیاست دی، د غربیانو د ټول نظام جوړونه زموږ د دوهم خلیفه عمرفاروق رض د نظام څخه الهام اخلي او که لږ ورزیاته کړو نو په اندلس کې د امویانو خلافت ..... هم د غربیانو پر مخ زموږ یوه درنه څپیړه وه، هغه وخت مسلمانانو په اندلس کې دومره پرمختګ کړی وو چې د ټولې اروپا نه د مسلمانانو ځمکو ته راتلل دلته به یې د هر قسمه پوهه او تعلیم ترلاسه کولو ، عثماني خلافت او سلطنت هم زموږ د سیاست یوه لویه برخه ده.

نور بیا ان شاءالله...